د ټکوریزو لومړی کتاب

ټکوریزې

محبوب شاه محبوب



# ګورګورې



دا نورې مه کړې
بې کورې مه کړې
پښتنې پېغلې
سرتورې مه کړې
خدایه ګورګورې تورې مه کړې
جنکۍ سرې شونډې ورورې تورې راوړېنه

# بسم الله الرحمن الرحيم

## د کتاب ځانګړني

کتاب :: ګورګورې

وینا وال :: محبوب شاه محبوب

بریښلیک :: mahbobshahmahbob@yahoo.com

خپرندوی :: مومند خپرندوی ټولنه

کمپوز :: خپله لیکوال

ډیزاین :: www.khost-web.net

چاپ کال :: ۱۳۹۰ل

چاپشمیر :: ۱۰۰۰ټوکه

# ډالۍ

د ژوند هغه نیمګړي ارمان ته چې په هر لمانځه کې یې د پوره کیدلو لپاره د دعا په وخت کې د خپلو لیمو څخه اوښکې بهوم.

محبوب

# د گورگورو دا نوی بن !

گران محبوب شاه محبوب د تېرو څه باندې
درې کلونو راهیسې پېژنم ،نوموړې د بتې کوټ
ولسوالۍ اوسیدونکی او په قوم مومند دی.
محبوب اوس مهال د ننګرهار پوهنتون د
ښوونې او روزنې د پوهنځي د دریم ټولګي لایقه
زده کوونکی دی،نوموړی د طبعیت له مخې غلی
او ارامه ښکاري،خو په خاموشۍ کې یې یو ډول
شوخي هم لیدل کیږي د یوه ځوان په توګه یې ښه
ځانګړتیا دا ده چې د یوه ځانګړي استعداد له امله
ډیر پر کاره ،په لږ وخت کې ډیر او باکیفته کار
کولو توان لري،هغه که په ژورنالیستیک ډګر کې
وي او که په بل...

نوموړی په دې تنکۍ ځوانۍ کې د کار کولو تنده او ذوق لري.

بخښنه غواړم زه د ده د شاعرۍ او لیکوالۍ پرځای په ده کې ورک شوم.

درنو لوستونکو !که ریښتیا وو ایم نوموړې ما له تېرو دریو کلونو راهیسې یوائې د یوه محصل او ژورنالیست په توگه پېژانده،خو څو ورځې وړاندې یې راته څو چاپ شوي کتابونه راکړه،ما فکر وکړه چې څه ! د بل چا کتابونه به وي، خو کله مې چې ټولگې واړولې راواړولې ومې لیدل چې دوه ټولگې نوموړي راټولې کړې وې، خو د یوې ټولگې لیکوال محبوب شاه محبوب په خپله دی.

د ټولگې څو کیسې مې چې ولوستې د ده د عمر په نسبت ډېرې پښې او کره ښکارېدې، محبوب شاه محبوب دادی څو ورځې وړاندې د گورگورې په نامه یوه نوې شعر ټولگه راته مخې ته

کیښودہ،د نوموړې ټولګې یوه ډیره عجیبه ځانګړتیا دا ده چې دا ټولګه چې نوم یې ګورګورې دی په یو نوي شعري فورم لیکل شوې، چې ټکوریزې نوم ورکړل شوی.

خدای(ج) شته زما لپاره د ټکوریزې نوم او جوړښت(فورم) بیخي نوی دی،دغه فورم یو څه د ټپیزو سره ورته والی لري.

هر نوی شی ښه وي خو د ښه والي تر څنګ یې رامنځ ته کول او په کې پرمختګ هم یو څه ستونزمن وي،خو دلته دغه واقعیت یو څه برعکس ښکاري،او هغه دا چې محبوب شاه محبوب په ټکوریزو کې ښه پخه او خوندوره شاعري کړې.

د بیلګې په توګه

چې زما په نوم شوې

مینه کې شوم شوې
ریښتیا به وایي
اوس نو د کوم شوې
ښه شوه چې ته راته معلوم شوې
نور دې د زړه په کور کې زه کله ساتمه

د شاعر په ټکوریزو کې بیلابیل موضوعات بحث شوي خو تر کومه حده چې ما ولوسته د عشقي شاعرۍ برخه پکې یو څه درنه ښکار.

د نوموړي د شاعرۍ منځپانګه که هر څه ده خو که سړی یې ولولي یو بیل خوند ترې اخیستی شي،د ده په ټکوریزو کې یوه بیله ښکلا پرته ده چې هر څوک مجبوري چې ویې لولي، د محبوب د شاعرۍ یوه بله ښه ځانګړنه دا ده چې پکې د پښتو ژبې خوندورې لنډۍ په یو خوندور او مناسب انداز ځای پر ځای شوي.

زه ګران محبوب شاه محبوب ته د دې ښکلې ټولګې د چاپ له امله مبارکي وايم،د ده د ځوان استعداد د لا غوړيدا او پرمختګ په هيله

په پښتني کلتوري مينه
عبدالطيف مل شينواری
جلال اباد د انعکاس راډيو دفتر
01/04/1390

## په (ګورګورې) کې ګورګورې

له خدايه زر وارې شکر چې د پښتنو دا خوږه او ښايسته ژبه پښتو يې په هر لحاظ په تېره بيا د ادبياتو

لپاره یې له دومره پراخو موادو ډکه پېدا کړې، چې که هر څومره سړی وغواړي کار پرې وکړي ،نو تر عمره به ترې وزګار نشي، او دومره خواږه به ترې راټول کړي چې د هر ذوق د هیلو تنده به پرې ماته کړي.

زه یې اوس نه منم چې ګوندې پښتانه شاعران په تېره بیا ځوان قشر یې د منظومو ادبیاتو لپاره د کار سره تر نثره زیات علاقمند دي،خو بیا هم یې دغې برخې یو ډول تقلیدي بڼه غوره کړې، په دې مانا چې ټولې یو ډول انګیرنې په کې دي ،سړي ته په یو ډول ذهنیت ورکولو څرخي،د دې خبرې لپاره یو ردونکی مثال همدا اثر چې ګورګورې نومېږي یادوم، په دې اثر کې چې د ولس لپاره کومې ولسي هڅه شوې ،بیخي ښکاره خبره ده چې نوې هڅه ده،نوښت دی،او د ولسي ادب د غني کېدو لپاره یو په ځای ګام دی.

لکه د نورو نوښت ګرو او ځوانو شاعرانو په څیر محبوب شاه محبوب هم په ځای ګام پورته کړی،تل په دې هڅه کې شوی دی، چې په یوډول نوښتګر فورم کار وکړي، پښتني ولس او ادب ته یو نوی زېری ورکړي، او

نور همزولي دې ته وهڅوي چې د پښتو ادب په ګل بڼ کې نوي خوندور او ثمر لرونکي نيالګي کينوي، چې د زړه له تله د ستايلو وړ دي.

د محبوب شاه محبوب د ګورګورې په دې ټولګه کې چې کومې خوږې ګورګورې دي ځکه خوږې دي چې د لنډيو يا ټپو څخه په کې کار اخيستل شوی،لنډۍ يا ټپې خو د پښتو ولسي ادبياتو هغه خوږ فورم دی، چې په خپل دې وړوکي او دوه ويشت سيلابه وجود کې په ډيره اسانه د سړي ذهنيت ته دداسې يو لوی او خوندور مفهوم د وړکولو توان لري، چې په بل فورم کې څه، د نړۍ په هيڅ ادبي فورمونو کې به نه وي.

هغه مفهوم چې يوه ټپه يالنډۍ يې په لږ او لنډ وخت کې يو ذهن ته ور رسولی شي،که همدا مفهوم په بل يا منثوري فورم کې افاده کوو، يا غواړو چې په ښه شان يې ذهنيتي کړو ،نو شايد چې روغ يو کتاب خبرې پرې جوړې شي. زمونږ پښتانه شاعران که وګورو، د ازادو نظمونو ليکلو پر وخت کوښښ کوي هغه ډول مفهوم چې ده د د سوژې برخه ده په څو لنډو کرښو کې روښانه کړي، خو ځينې وخت

سره له ډيرو هڅو ترې د دغې ازاد نظم لړۍ پسې اوږده شي او پوره مفهوم لپاره بايد دومره نظم نور هم وليکي ترڅو لوستونکي ترې پوره اخذ وکړي ،نو شاعر يې د پته مجبور شي چې د نظم په وروستۍ برخه کې دنظم د نور اوږدوالي مخه په يوې هم مفهومه او ورته مانا لرونکې لنډۍ په ورزياتولو ډب کړي ،او پاتې نور مفهوم په لنډۍ سره روښانه کړي،نو دلته د نظم ټول مفهوم يوائينۍ همدا کوچنۍ لنډۍ وه چې افاده او روښانه يې کړ.

د ځوان شاعر ،ليکوال او ژورنالېست محبوب شاه محبوب د ګورګورې په نوم همدې اثر کې، چې د کوم فورم لپاره کار شوی هغه ټکوريزې ياديږي، چې دې ټکوريزو کې هم د ټپې څخه کار اخيستل شوی، نو خوند يې هم ټول د ټپې په شان دی.

تر دې د مخه يو بل فورم هم چې زمونږ ځوان قشر ډير کارولی هغه د ټپيزو په نامه ياديږي، چې دا فورم هم د ټکوريزو په شان په ټپه يا لنډۍ سينګار شوی دی،زه د ټولو ليکوالانو شاعرانو په تېره بيا د محبوب شاه محبوب په شان د ځوان کهول څخه هيله کوم چې د دغسې نوښتونو

په رامنځته کولو کې لازیاتې او لازیاتې هڅې وکړي ،او تېرې هڅې یې په ټوله مانا د ستایلو وړ بولم.

زه نه غواړم چې په وړه خوله نورې لویې خبرې وکړم نو خپلې خبرې د محبوب شاه محبوب په یوې ښکلې ټکوریزې پای ته رسوم او د محبوب صیب د لا زیاتو نوښتګرو بریاوو په هیله پاتې کیږم.

دا نورې مه کړې
بې کورې مه کړې
پښتنې پیغلې
سرتورې مه کړې
خدایه ګورګورې تورې مه کړې
جنکۍ سرې شونډې وروړي تورې راوړینه

سهارګل امیرزی
۱۳۹۰/جوزا/۲۵
جلال اباد

## ورک محبوب او د ګورګورو ځولۍ

که فکر وکړو نو د ټپیزو بازار خو لا ښه تود دی، ډیری ملګري هم پدې هڅه کې دي چې دغه بازار څنګه چې دی، دغه شان تود پاتی شي، او ددی لپاره یې پوره هڅی پیل کړي.
د ټپیزو ډیری کتابونه راروان دي او د ټپیزو د مینوالو له خوا یې ښه تود هر کلی هم کیږي.
اوس له دغی نه په الهام سره پښتو ادب ته یو نوي فورم لاره وکړه ، ( ټکوریزی ) دا د اوسنیو ځوانانو نوی لاسته

راوړنی دي، چې د پښتو ادب د لا غني کيدا لپاره يې کړي.

باید ووایم چې د دغې لارې د سرلاريو څخه یو هم محبوب شاه محبوب دی، ځکه لومړی ځل دی چې په پښتو ادب کې د (ګورګوری) تر سیوري لاندی د ټکوریزو کتاب چاپيږي، محبوب يو زيارکښ ځوان دی، چې د بلا بوښتياوو سره سره يې د ادب لمن ټينګه نيولی، که د کتاب د نوم په اړه ووايم نو ډېر په زړه پورې دی، ځکه چې ټکوريزه هغه څه دي چې د لنډۍ موجوديت په کې شرط دی، او لنډۍ د غريزې علاقې زيږنده ده، ګورګورې هم هغه څه دي چې ډيرو غريزو علاقو ته يې ښکلا وربخښلې، که زه سترګې پټې نه کړم او د محبوب صيب لاندې ټکوريزې ته ځير شم او خبرې پرې وکړم نو ډير وخت به ونيسي.

سترګې يې تورې
خبرې سپورې
ځکه خو وايم

د سپوږمۍ خوږې
ممانۍ سرې ګورګوری توری
زه ده موزې د ډوډۍ څه پروا لرمه

زه يې د ټکوريزو په اړه نور څه نه وايم ،خو له استعداد يې سترګې هم نه پټوم ،د محبوب د لا برياليتوب له پاره خپل خيال د ځښتن تر عرشه رسوم، او د جانان له ربه ورته د اوږد عمر او دلا بريليتوب سوال کوم.
قلم يې تاند او ژوند يې مينه ناک.
عبدالله (هوډ )
انعکاس راډيو
جلال کوټ

## خدایه ګورګورې تورې مه کړې

لکه څنګه چې زما دوستانو مخکې ذکر کړه چې لنډۍ د ولس مال دی، او هغه څه دي چې ډیر ژر د یو چا زړه ته لاره پیدا کوي، په ریښتیا هم لنډۍ هغه څه دي چې په دې خپل وړوکي جوړښت کې ډېر څه لري، او په ځان کې یوه لویه مانا ځایولی شي ،چې زه یې د مثال په ډول لاندې لنډۍ راخلم.

سپوږمیه کړنګ وهه راخیژه
یار مې د ګلو لو کوي ګوتې ریبینه

که د ښالو لښکری راغلې
زه به بو مل ته د اشنا دیدن له ځمه

 څه فکر کوئ ! چې که په دې پورته لنډیو خبرې شروع کړو نو څومره به وي؟
دا نو تاسې ټولو ته جوته خبره ده چې ډیرې زیاتې خبرې پرې وشي، او که لیکل پرې شروع کړو نو کیدای شي چې ګوتې مو په لیکلو ستړې شي، په هر حال زه نور په لنډۍ نه غږیږم او راځم خپلې خبرې ته هغه دا چې ټکوریزه ده.
لومړی راځم او د ټکوریزې په جوړښت یو څه غږیږم.
ټکوریزه ټول دوه څلویښت سیلابه لري چې
لومړی، دوهم، دریم، او څلورم نیم بیتي یې پنځه پنځه سیلابه دي او وروسته ورپسې لنډۍ تړل کیږي، لکه په لاندې ټکوریزې کې.

بیلول ګران دي
هېرول ګران دي
جانانه مینه
کول ګران دي
د یاره زړه صبرول ګران دي

## په دریابونو کرښې چا راښکلې دینه

دا په پښتو ادب کې یو نوی فورم دی، چې د ټکوریزې نوم ورته غوره شوی، ټکوریزه هم هغه فورم دی چې په ډیره اسانۍ سره د انسان زړه ته لاره پیدا کوي، زما په فکر دا به پکې د لنډۍ برکت وي.

زه نو نورې خبرې نه کوم ځکه چې له ما مخکې درنو دوستانو د ټکوریزې په هکله ډیر څه ویلي، او په پای کې د خپل درانه استاد عبدلطیف مل شینواري نه ډیره ډیره مننه کوم چې خپلې مشورې یې له مانه، نه دي سپمولي او له ماسره یې مرسته کړې، همدارازد خپلو درنو دوستانو عبدالله (هوډ)، سهار گل امیرزی، عبدالرحیم(خوښمن)، ثناءالله غرقاب، جاوید شینواری او صداقت غورځنگ د مینې ډیر پوروړی یم چې تل یې زما ملتیا کړې او ما ته یې په هر برخه کې ډاډ راکړی، هو ریښتیا ! د مرگي دې له یاده ووځي د خپل گران دوست او د مومند خپرندوی ټولنې مسئول ښاغلي نصیر احمد مومند نه هم نړۍ نړۍ مننه کوم چې له دې یې مخکې

هم زما څو ټولګې د چاپ په ګاڼه ښکلې کړې او دا ټولګه يې هم د چاپ په ګاڼه سمبال کړه، د ستاسې د لابرياوو په هيله.

محبوب شاه محبوب
انعکاس راډيو
۱۳۹۰/جوزا/۲۷

دا نورې مـه کړې
بې کورې مه کړې
پښتنــې پیغـلې
سرتورې مه کړې
خدایه گورگورې تورې مه کړې
جنکۍ سرې شونډې وروړي تورې راوړینه

هــوا چلـــيږي
شپـــه رايخـيږي
پام وكـــړه يــاره
زړه مې درزيږي
مينه دې ورځ په ورځ كميږي
ياخو كوژدن شوې يامئينه په بل شوينه

زما جانـــــانه
ډېر يې نادانه
دغه مې واوره
په مايې گـرانه
ازاروه مې مه جانانه
څوك به دې خوښ شي بيا به تا ازاروينه

اول قاریږي
کټ کټ خندیږ
ځنګ چې خفه شي
بیا ښه ژړیږي
مینه له مینې پیدا کیږي
په مینه مینه دې کاته مئین دې کړمه

سویه ګوګله
مړشې پاګله
زما جانانه
د ګلاب ګله
پاس په کمره ولاړه ګله
نصیب د چا یې او به زه درخیژومه
د ژوند ارمانه
ښکلیه جانانه

تا نه قربان شم
د زړه درمانه
زما جانانه په ماګرانه
زه له پخوانه مینه تا سره کومه

په کور زړه شې
او واده مه شې
جنۍ دا واوره
دعا کوم مړه شې
خدای دې زما که د بل مه شې
که زما نه شوې بیا دې مرګ ته خوشحال یمه
نور زړونه مه وه
خالونه مه وه

نظره نه شي
گامونه مه وه
د لار په سر سترگکونه مه وه
د جلال اباد ونې رنگې دي ځوک به وینه

جانانه خاندي
سترگې دي لاندي
په ترخ راگوري
هیلې دي تاندي
جانانه زیری مې درباندي
زمونږه کده ستا سې کلي ته درځینه

هغه مې یار دی
دا مې اغیار دی

خفه یم ځکه
غلی رویبار دی
صبا مې بیا د کډې وار دی
په سر پنډو نه چلوم په زړه غمونه

په ما مینې
ای قدرمنې
دا دنګه ونه
د چینارونې
ای د خورو زلفو میرمنې
زلفې په خیال پورته کوه رنځور دې کړمه

یارې کې کیږي
بنګړي ماتیږي

ښکلیه جانانه
شپه را یخیږي
دا نیمه شپه ده غله لګیږي
د لونګین میرمنې وشمیره لړونه

خبره نه ده
منکره نه ده
ولې دا وایې
له سره نه ده
یاري د زور خبره نه ده
که زړه دې نه وي بیا دې نه مجبورومه

هغه یې تېر شو
هغه یې هېر شو
سرته یې څنډه ورکړ

غمو کې ګېر شو
تا راته څه ویل له ما هېر شو
ما ته هغه خبره بیا وکړه مینه

زما زاري ده
ستا بیماري ده
ته هم پوهیږې
مینه جواري ده
مسافري سخته خواري ده
باران به اوري څوک به ځای نه ورکوي

جانان جانان دی
په ما ډېر ګران دی
اوس به څه وکړم
ما سره وران دی

افسوس افسوس ارمان ارمان دی
دا کوم اسلام دی څوک مې نه کوي پوښتنه

احوال مې دادی
رومال دې دادی
د سپوږمۍ سپینه
جمال دې دادی
امین پرې وکړئ، سوال مې دادی
چې مې جانان راسره غاړه غړۍ شینه
په درنګ مې تېر شو
په جنګ مې تېر شو
په ناخبره
زار او ګنډیر شو
او به مې څښې لونګ مې تېرشو

دزړه په سرمې زرغونه دلونګ ونه

په غم يې موړ کړ
جنګ يې راسوړ کړ
په تورو زلفو
يې ګل راسور کړ
اوربل يې بيا په مخ راخپور کړ
لکه چې ښيزه په باران کې لنده شينه

شته ما او تا کې
وفا په ما کې
يو فرق يې دادی
جفا په تا کې

باقي به څوک نه وي دنیا کې
غیرد الله نه چې موجود به په کې وینه

مینه کې ژاړې
ته چیرې لاړې
ولې جانانه
ځان رانه نغاړې
بخته نامرده چیرې لاړې
یو ځلې راشه چې د سیال سره سیال شمه
شپه خو رنه ده
په غوږ کڼه ده
ته کوکه مې وکړه
ګرده چڼه ده
بدن یې باغ زنه منه ده

نجلۍ وړه ده د خوراک به کله شینه

نیمه ارمانه
تار تار گریوانه
ننگرهار کې اوسې
محبوبه گرانه
بېگا مې خوب لیده جانانه
چې دې په سره ډولۍ کې کورته وړې یمه

ښکلې راغلې
گوتې شمیرلې
له ډېره کبره
پوزه یې ترڅلې
بېگامې ستا لارې څارلې

## چې ته رانغلې زه د غمه ویده شومه

په تا نه ویاړم
بس درنه لاړم
مرور یاره
ځان درنه نغاړم
بېلتون پرما نه دی چې ژاړم
بیلتون شمال دی هره ونه ښوروینه
چې یار مې راغی
رو یبار مې راغی
الله دې خبر کړي
چې پلار مې راغی
بېلتون په تنګه کوځه راغی
ماویل سلام دی ده وې کوردې ورانومه

خوږه خوږه ده
پسته مسته ده
له کبره ډکه
جنۍ وږه ده
په پورې باغ کې سره منه ده
نه ورختی شم نه مې زړه صبر کوینه
د ګل نه ښکلی
په ما ښاغلی
ژوندون به خوږ وی
خوند به یې کولی
چې ما ویلی او تا منلی
تا به د دې یارانې خوند لیدلی ونه

چې زما په نوم شوې
مینه کې شوم شوې
رېښتیا به وایې
اوس نو د کوم شوې
ښه شوه چې ته راته معلوم شوې
نوردې د زړه په کور کې زه کله ساتمه

سره زارېږئ
ژر رارسېږئ
ورغاړېوځئ
مست شئ ګډېږئ
عالمه خاندئ خوشحالېږئ
د پښتنو پښتو ژوندۍ شوه خوند کوینه

پہ ماکې نشته
پہ تاکې نشته
زہ چې څہ غواړم
دنیاکې نشته
مسلمانې پہ چا کې نشته
مرور گرځم ځوک مې نہ پخلا کوینہ

رویبار ترور وو
څہ خو ضرور وو
خدای شتہ دوزخ وو
تک سور تنور وو
پلار يې زما د پلار مزدور وو
لور يې د کور غولی پہ ما جارو کوینہ

نه په بالښت وي
تخت خو په بخت وي
د رقیبانو
خو زړګی سخت وي
هغه به څومره ښکلی وخت وي
چې ستا د ښکلو سترګو وکړم دیدنونه

دا سوال مې ګوره
سور شال مې ګوره
چینجو خوړلی
شین خال مې ګوره
قبر سوری که حال مې ګوره
په پخوانو سترګو مې پرېوتل ګردونه

نه په ترهګر وي

نه په خټګر وي
الم‌ه‌وا‌ور‌ئ
نه په ینګر وي
د زرو قدر په زرګر وي
د پېغلو قدر په ځوانانو باندې وینه

ښه جفا وکا
هځ وفا مه کا
خوښه دې خپله
د زړګي وکا
د نیمو شپو ټپې مزه کا
څوک به مین وي څوک به ورک د ملکه وینه

یودې شپیلۍ ده

یو دې شړۍ ده
هغه هم جوړه
او د وړۍ ده
یو دې پکول بل دې خولۍ ده
زما د دواړو نه سرتور خوښ یې مینه

ښکلي خندا کړي
عاشق ژړا کړي
په هر لمانځه کې
ملا دعا کړي
خدای به دې زلفې په لاس را کړي
ماته د کلي ماشومان دعا کوینه

په زړه یې زور وي
تن کې یې اور وي

نوم به یې تمام
کلي کې خپور وي
عاشق سړی د رنګه تور وي
سوی په اور وي معشقو سپلی وینه
له تا خبرېږم
په اور سوزېږم
عاشق تل وایي
هڅ نه صبرېږم
زه په مئین سړي پوهېږم
د دروازې په زنځیر ځان مشغلوینه

ښکلی یې نوم دی
جانان ماشوم دی
هسې زورېږم
زړه مې مظلوم دی

کور یې په کلي کې مالوم دی
دبام په سر یې کشمالي کرلي دینه

منتر دې واخله
جانپر دې واخله
پخبړه ژر شه
څادر دې واخله
ورشه د یار خبر دې واخله
په لار کې ناست دی په سر خاورې بادوینه

ځله انکار کړې
ځان په به دار کړې
کمبخته ولې
خیرې ازار کړې
چې مرور شوې ځان به خوار کړې

## معشوقې کله مرور پخلا کوینه

سترګې پټېږي
زړګی زورېږي
ستا په لیدلو
هڅ نه مړېږي
ځوک یې دیدن پسې رندېږي
ځوک یې د کټه غورځوي چې خوب راځینه

دایمه دایم
تل په ژړایم
زړګی مې وایي
نن خو پخلایم
په نیمو شپو سندرې وایم
د جانان خیال مې اوس ارام ته نه پرېږدینه

اول خندا کړي
وروسته وفا کړي
دا يې تقدير دی
ښکلي جفا کړي
مينه اول سړی باچا کړي
د ملنگۍ تاج ورته وروسته په سر کړينه

دا سودايي شو
لاړ صحرايي شو
په تورو سترگو
ستي ستي شو
اشنامې ولاړو اسماني شو
اسمان چې ځمکې ته راځي قيامت به وينه

راشه خوله واخله
هرڅه دې واخله
زړګی مې راکړه
دا زړه دې واخله
راشه ایینه رانجه دې واخله
نه دې یاري کوم نه دې ننبې ګرځومه

په دې پوهیږم
لیونی کیږم
نن په جامو کې
زه نه ځاییږم
په مخه مه راځه شرمیږم
په دې خبر یم چې تا ما ته راکوینه

غړونه وشول
زنګونه وشول
په غم ویده شې
شرمونه وشول
د سبایي بانګونه وشول
جنۍ د یار له مټو زلفې خلاصوینه

زړه مې خیرې که
درته زارې که
هڅ نه پاڅیږي
څه خرخرې که
د سهار چرګه پرې نارې که
جانان زما په شرم خوبښ دی نه پاڅینه

سترګې دې نیغې

څه غواړې پیغلې
ګورم دې هر وخت
چې ژاړې پیغلې
په تناره ولاړې پیغلې
ډوډۍ دې نه خورم د دیدن وږی دې یمه

بیلول ګران دي
هېرول ګران دي
جانانه مینه
کول ګران دي
د یاره زړه صبرول ګران دي
په دریابونو کړښې چا راښکلې دینه

زه دې سوزېږم
ودې کړېږم

ارمان ارمان دی
په دې ژړېږم
په مرګ خو مرم نه پاتی کیږم
ګورته به یو سم ستا رتلي ځوابونه

ای قدردانه
هرچاته ګرانه
ستا په نامه یم
تېر د خپل ځانه
په مرګ خفه نه یم جانانه
راکړه یو ځل د تورو سترګو دیدنونه

زړه مې خوږیږي
هر وخت ژړیږي
په نه خبره

مروريږي
ديدن د مړو نه، بنديږي
پر مايې بند کړل د ژونديو ديدنونه

د خدای د پاره
د زړه قراره
څه له ودريږې
په لويه لاره
ژاړم به خود د مينې ياره
په زړه مې ګرځي ستا خوارې يادونه

ژوند مې خزان شو
پاتې ارمان شو
د زړګي سر مې
ورپسې وران شو

ما ورکتل هغه روان شو
په چغو چغو مې ژړل نه ستنید نه

په زړه دې بار شم
بس گناه گار شم
په خوب کې ژاړم
ښکلیه په دار شم
کله دې یار کله اغیار شم
دوه ژبی یاره خدای به در کړي عذابونه

سم دې وربل کړه
محبوب درخپل کړه
په لاره رو ځه
تگ د بلبل کړه
گل خو دې راکړو رب دې گل کړه

خدای خو دې ستا عمر د ګل نه کړي مینه

ستا له انکاره
ځمه له ښاره
کاني دې وکړې
شوم بې اعتباره
زما د ډیرې مودې یاره
چیرته په خیال کې دې راځم که هېر دې شومه

کوم در ته کینم
اوس چیرته کینم
ستا چې راتګ شي
زه ور ته کینم
یو کال به نوره در ته کینم

زیارت خو نه یې چې جنډې به دې ساتمه

لارې جارو که
ځوانې دارو که
مور دې ویده ده
که منداړو که
دیدن په سیند کې را لاهو که
د دریابونو ماهیان غاړې له راځینه

سترګې یې تورې
خبرې سپورې
ځکه خو وایم
د سپوږمۍ خورې
ممانړې سرې ګورګورې تورې
زه د موزې د ډوډۍ څه پروا لرمه

ځان چې رانغاړې
نور نو څه غواړې
په دې پوې نه یم
چې ولې ژاړې
په نیمه شپه دې ببرې راوړې
بیرې دې نه خورم ما تو تان خوړلي دینه

ووایه څه دي
څه دې په زړه دي
له ډیره عمره
ژوند کې تراخه دي
مونږ خو اغزي کرلي نه دي
جانان زمونږ کلي ته ولې نه راځینه

مینه ترې غواړي
هاځان رانغاړي
خاورو کې پروت دی
بیا هم پرې ویاړي
مین کم عقل دی چې ژاړي
باران په کاڼو باندې څه اثر کوینه

ژوند راته گران شو
خزان خزان شو
حیران یم دې ته
دا څه گوزران شو
لیونی لاړه کلی وران شو
زه په دې وران کلي کې شپې صبا کومه

هسي خواري کړې
څه ټګ ماري کړې
بازاری یاره
خوشې ځاري کړې
ورکه د کور کلي یاري کړې
د ځنې سر مې دیوالونو وخوړونه

څه ناز ادا کړې
دا څه بلا کړې
ولې په تلوتلو
کې خندا کړې
وړوکی ورور یې په ژړا کړې
چې شین خالی خو یې په بام راوخیژینه

خال دې رنګین شو
ښکلی جبین شو

د خندا شنه شوې
تندۍ دې وړین شو
د زړه په للمه راته شین شو
په رڼو اوښکو یې هر وختې یادومه

چې راته سوال کړې
روا وبال کړې
د راز خبرې
پاس په دیوال کړې
اخیر به ما په چا حلال کړې
چې له دیوال ښکاره کوې سپین مړوندونه

جنۍ خفه شې
خوشحاله مه شې

کوژدنه شې
او واده مه شې
زه خودې مړ کړم خپله مړه شې
د بام له سره چې کوې ایشارتونه

زه چې هر څه کړم
نور د خپل زړه کړم
یوه خبره
درته نن زه کړم
نورې ښېرې به درته نه کړم
خدای دې په سره جوړه کې کونډه کړه مینه

د ستا په تمه

ببګا په تمه
ستا د سرو شونډو
خندا په تمه
ستا د یوې ادا په تمه
په دې امید جانانه شپې صبا کومه
ټکه غرمه شوه
په خوب ویده شوه
خواته یې لاړم
په ما خوره شوه
خولګۍ مې ستا په شونډو سره شوه
بهر به وایم ما انار خوړلي دینه

لاړې پردی شوې
دود سپېلنی شوې
د تورو غرونو

او غرځني شوې
جانانه لاړې ليونی شوې
په لويه لاره کې شپېلي وهې مئينه

رنګ يې ژېړ يږي
زړونه يې تشيږي
کم عقل خلک
پرې څه پوهيږي
اسمان په ستورو ښه ښکاريږي
د ځمکې مخ په ښکلو ښکلو مزه کړينه

په اور لمبه شې
خاورې ايره شې
په ژوند خوشحال
نشې خپه شې

څنګه چې زه یم دا سې ته شې
په کور دې راشه بې بارانه سیلابونه

رانه راتېر شو
ژوند راګنډیر شو
غم دې د زړه
ځنې چاپېر شو
ولې هغه وخت درنه هېر شو
چې په خندا به دې ویل تا پسې مرمه

چا پسې ژاړې
چې رانه لاړې
د زړګې لارې
مې شوې ویجاړې
چې مې د مینې کیسې ژباړې

خیر دی یو ځل مې خواته بیا راشه مینه

راځه پخلا شه
وفا وفا شه
د خوار محبوب
درد ته دوا شه
د رنځ پوښتنې ته مې راشه
د زړه په سر باندې زخمي یم مړ به شمه

وایه نېګاره
څه شوې رویباره
غېږې ته یې راشه
د محبوب یاره
شونډې درکوم د دې د پاره

وخت دې د تګ دې چې ونه کړې ارمانونه

اوس بې وسي ده
بس غريبي ده
په غم لړلې
مې زندګي ده
چې مو تر مينځه جدايي ده
سپينې سپوږمۍ ته سلام کړه سلام به کړمه

يار مې افغان دی
په پاکستان دی
ما ته له ټولې
دنيا نه ګران دی
زما جانان زما جانان دی
چې په خندا شي شونډې وسپړي ګلونه

څه مې ژوندون دی
ډير بې سکون دی
بيغير له ياره
په زړه چاودون دی
مينه د دوو زړونو تړون دی
که تړون نه وي بيا نو هسې ټوکې دينه

د غم برسات دی
زړګی مې مات دی
ديدن د مخ دې
راباندې قهط دې
حسن دې کم ظلم دې زيات دی
خلک د حسن مطابق ظلم کوينه

دا مې کفن دی
زما رفتن دی
زما د غم نه
او زنګدن دی
که دیدن کړې وخت د دیدن دی
مدام به نه وې بې زحمته دیدنونه

ښکلې خبرې
شاتو شکرې
له مانه څه له
ته مرورې
دا جنګۍ وړې کوترې
وړې کوترې مې خورې نه مړیدمه

چې راته یاد شي
ژوند مې برباد شي
هڅ فکر نه کړم
محبوب به ښاد شي
چې په ژړا او په فریاد شي
خپلو سلګو سره اسمان په ژړا کړینه

ستا له ستمه
له ډېره غمه
او ستا د دیدن
په تمه تمه
مبارکي راکړئ عالمه
د تومتونو سره یار قبوله کړمه
په پښو شل نه شې
د یار مل نه شې

د خپل جانان د
مینې غل نه شې
چې شوکولې ترې ګل نه شې
هسې پردو باغچو ته مه نیسه لاسونه

د زړه باداره
زما واکداره
ماته چې کله
راځې په لاره
زما د ښځې وربل یاره
په بټې کوټ کې خپل محبوب یاد کړه مینه

له ډیره غمه
سلګۍ وهمه

کډه رانغاړم
له تانه ځمه
کلی رقیب ته نور پریږدمه
دا جدایي د زهرو گوټ دی تېر به یې شینه

داغلی نه وی
ترلی نه وی
زړه مې په مینه
ورکړی نه وی
چې محبت مې کړی نه وی
اوس به په دښتو مېرو ولې ګرځیدمه

تا توبه گار کړم
بیا دې ایسار کړم
چې دې له مینې

ځنې بېزار کړم
زه به په چا باندې اعتبار کړم
زمونږ د چم ښکلي وفا کله کوینه

چې مل مې نه کړې
سور ګل مې نه کړې
د تورو زلفو
ول ول مې نه کړې
خپله جانانه خپل مې نه کړې
په زړه مې پاتې شو نیمګړي ارمانونه

رقیب رټمه
تا یادومه
زړګې له تانه

نه صبر و مه
په سترګو ړوند درپسې شو مه
وایه جانانه چې دې یاد او که هېر یمه

ګلشن ته راشه
مېهن ته راشه
زما د زړه
چمن ته راشه
جانانه خپل وطن ته راشه
زه دې هر وختې په لمانځه کې یادومه

سلګۍ وهلې
چازورولې
مور یې میره ده

بیا یې ژړولې
بې رحمې مور ده بیا وهلې
لاسونه یې مات شه چې پر تا گوزار کوینه

ده سپینه سپینه
ښه نازنینه
په ټولو ښکلو
کې ده حسینه
د لیونۍ، لیونۍ مینه
زه یې په غرونو لیونی سپیلنی کړمه
رنگ تښتیدلی
ژیړ یم زبیښلی
لکه یو غټ رنځ
یمه وهلی

کاشکې چې اوس دې وای لیدلی
تا به زما خیره کې غم لیدلې ونه

پیکې ته گل کړم
تابه بلبل کړم
ځان به لوگی کړم
خو تا به خپل کړم
جانانه راشه چې دې ښکل کړم
دوه ورځې ژوند دی په خندا یې تېرونه
دغه مې لوری
راغی سر زوری
مانه دې هېر شو
د نامه توری
ستا یارانه د ونې سیوری

کله په ما کله په نورو خلکو وینه

مینه اظهار کړم
ځان به ترې ځار کړم
لکه منصور به
په غاړه دار کړم
زه به وړوکی هلک یار کړم
تمامه ورځ به یې په غیږ کې ګرځومه

دغه مې حال دی
دا ځويم کال دی
جبين د پاسه
وران شوی خال دی
ستا يارانه لنډی ديوال دی
ما د لنډي ديوال نه ډير دانګلي دينه

ته خو پوهيږې
په څه دردېږې
لکه باران مې
په زړه وريږې
ياري کوې په سر وبريږي
څوک چې ياري کړي سر په لاس کې ګرځوينه

له ما خبر شوې

گل د انځر شوې
د سترګو نور
د زړه جوهر شوې
رویباره خاورې دې په سر شوې
هر چا غوږو ته موبایل نیولي دینه

چې یتیمان شي
ژوند څومره ګران شي
که پلار یې مړشي
بچي حیران شي
سړی چې مړشي کور پرې وران شي
په بعضو خلکو باندې وران شو وطنونه

مه کړه خونکارې

وهې شوکارې
وراني به نه کړې
د ګودر لارې
په بام ولاړې هوا دارې
اخير به تېر شي ستا ځواني زما سوالونه

بې لاره مه شې
اغياره مشې
زما د مينې
رويباره مه شې
که يار لرې بې ياره مه شې
بې ياره انجونې هر ورځ ژړا کوينه

دا دې ايمان دی
څيرې ګريوان دی
تاوان به وکړې

عشق څه اسان دی
دیدن په لک روپۍ ارزان دی
پلو مې باد واخیست وړیا دې ولیدمه

زړه مې درزیږي
شونډې رپیږي
لاس نه یې ټینګ کړئ
محبوب غورځیږي
مخ په مړوند کله پټیږي
شیرینه یاره سلامي ولاړه یمه

غاړه کې یې تار دی
مخ کې یې یار دی
هاغه بر وینې
دا یې اغیار دی

ستا یارانه د چتو ښکار دی
څوک چې د چتو ښکار کوي تش به راځینه

چې راته ګران شې
بیا نو تاوان شې
تنې زما د
څیرې ګریوان شې
زما د زړه بازاره وران شې
په تا کې بله سودا نشته بې د غمه

زخم کوشېرو
غم رانه هېرو
د زړګي زور مې
له هر چا ډېر وو
اول مې شوق د سبق ډېر وو

په تا مئین شوم اوس سندرې یادومه

د زړګي غمه
ورک شه صنمه
لاره مې ورکه
لاړ شم په کمه
زما د عمره سره سمه
میرات شي غمه په خندا دې تېرومه
ها پاګل نیسې
ته یار بل نیسې
د اور لمبو ته
مې ګوګل نیسې
اوس مې د هغې ځنګل نیسې
چې به کول تا پرې همیش د ناز خوبونه

څه ترهګر دی
هو بلو ګر دی
عالمه واورئ
دا جادوګر دی
بیلتون د مینې سوداګر دی
د اشنا قدر په اشنا پېدا کوینه
دا نورې مه کړې
بې کورې مه کړې
پښتنې پیغلې
سرتورې مه کړې
خدایه ګورګورې تورې مه کړې
جنکۍ سرې شونډې وروړې تورې راوړینه

دا ته چې نه وې
زما په زړه وې
ریښتیا به وایې
خفه په څه وې
جانانه ته خو داسې نه وې
د چا خبرې دې ضرور منلې دینه

دخدای نیک بختې
د ګلو لښتې
اول وعده کړې
بیا رانه تښتې
د پیر بابا لارې دې سختې
د ګولو لښتې جنۍ ستا لپاره څمه

په مازهیر دی
ژوند کې امیر دی
له ملا یې تاو دی
زلفو زنځیر دی
هر چا ته خپل وطن کشمیر دی
ما ته کشمیر دی د ننگرهار ښکلي باغونه

چې مې جانان شي
ډیر راته گران شي
راته راخوږ
لکه ایمان شي
زما د زړه بازاره وران شي
په تا کې بله سودا نشته بې له غمه

یم ناکراره

په ځو ځو واره
شپه ورځ ژړېږم
د ستا لپاره
چې راپه یاد شې ښکلیه یاره
سر په زنګون کړم او ښکې لاندې تویومه

رنګ مې زیړیږي
زړه مې درزیږي
ټول ارمانونه
مې ایره کیږي
چې کبر نه کړې نه خواریږي
ای پاکه ربه ما به کبر کړې وینه

زار شم له تانه

ای په ما گرانه
زما د زړګي
د کلي خانه
هغسې نه یمه جانانه
چې نن صبا دې ولیدم لیونی یمه

که دلغمان دی
خوزما جانان دی
ماته له ټولې
نړۍ نه ګران دی
په ما یې زر منه احسان دی
جانان مې ټول کلی پرېږدي ما له راځینه

ډېره خطا کړې
پسې ژړا کړې

ځان به په ټول
جهان رسوا کړې
یارانه هلته خوند پیدا کړي
چې کله کله جدایې په کې راځینه
اول عبرت دی
وروسته جنت دی
اوس خو دنیا کې
عزت دولت دی
زما د ښکلي یار عادت دی
چې په غصه شي سترګې برندې واړوینه

په سترګو ژاړې
زړه رانه غواړې
او تره راغله

شوه راتر غاړې
ارمان مې دا دی رانه لاړې
کاشکې مې ستا سترګو ته ډیر کتلي ونه

چې مرور دی
دا مسافر دی
محبوبه مخ یې
لکه د لمر دی
یار مې د ګلو سوداګر دی
ماته به راوړي د رامبیل چامبیل ګلونه

بې وفا نشې
ورخطا نشې
دغه مې واوره
چې په شا نشې

چې په کور نه وم ته رانشې
په بڼو لار به درته ځوک جارو کوینه
لار کې پیچومې
ډیرې دې لومې
هرې خوا پام کړه
په لار چې درومې
تورې وهه برې به مومې
که برې نه وې ځوانان تل په تورو مرینه

ګلان رژیږي
په څه ژړیږي
کمعقل هغه
دی چې خندیږي
په ایشارت مې نه پوهیږي

د بې شرمۍ لوټې به څو ورغورځومه
بس مه جنګیږه
رانه زاریږه
نور ژړا مه کړه
راته خندیږه
مخامخ مه راته ودریږه
لارې کوڅې د غمازانو ډکې دینه

چې شوګیرې کړم
څومره زارې کړم
په هر لمانځه کې
ځانته ښیرې کړم
بیلتانه وسوم غم ایرې کړم
خوښه د باد ده چې په هر لورې مې وړینه

د بنګړو شور دی
ټیکری یې تور دی
د هرچا زړه کې
د مینې اور دی
ښایست په ټول پېښور خور دی
دا د سوات جونې خو ټولې زیړې دینه

د سپوږمۍ خورې
زلفې دې تورې
د ستا د مینې
تومت راپورې
څو مره خوا ږه خوا ږه راګورې
پلو دې ونیسه چې زړه در واچومه
له ما زاریږې

نه خفه کيږې
ګل مخيه ياره
راتازه کيږې
که په سلام مې خوشحاليږې
زه به دا سرې منګولې تل په تندي ږدمه

څه ښايسته شپه وه
سپوږمۍ رڼه وه
پاس په حجره کې
جوړه ميله وه
هغه کيسه څومره خوږه وه
چې د جانان په غيږ کې پاڼې پاڼې شومه
چې درنه لاړه
اوس پسې ژاړه

دنیا د زړه مې
شوله ویجاړه
د غره لمن د ګودر غاړه
امیل په غاړه جانان دیدن ته ځمه

ښکلیه نادان یې
زما جانان یې
ما ته له ټولې
نړۍ نه ګران یې
جانانه دومره په ما ګران یې
چې ته روان یې زه دې شمیرم قدمونه

څنګه به ښاد شې
څنګ به اباد شې
په ټول ژوندون کې

ته  زنده باد شي
ډوډۍ ته کینم ته را یاد شې
له هر یو کپ سره مې اوښکې تویو مه

زړه یې درزیږي
په بام ودریږي
جوړې یارۍ ته
یې زړګی کیږي
جنۍ زما په زړه پوهیږي
چې مخامخ شې سترګې برندې ونیسینه

زړه مې خوږیږي
نه قراریږي
دسمال د یارته
نن بیا ژړیږي

دیدن د ناستو خلکو کیږي
ټول مسافر مې په الله سپارلي دینه

شپه چې اوږده شي
څملي اوده شي
بې له تا یاره
سخت گوزاره شي
جانان چې ځي په مخ دې ښه شي
زړه یې زما په مینه بند دی رابه شینه

نه د حجرې شې
نه د دېرې شې
هر وختې وایم
ایرې ایرې شې
چلمه مات ټوټې ټوټې شې

## مین په ما دی غم په تا غلطوینه

اوس پسې ژاړه
کوټې ته لاړه
په سینه یې کیښوه
لاسونه دواړه
پورې لیلا په لمونځ ولاړه
قبول یې نه کړې تور اوربل په خاورو ړدینه

دا ننګرهاریان دي
په ما ډیر ګران دي
بې ننګه خلکو
سره ډیر وران دي
نه په جهان او نه په ځان دي
د خپل وطن لپاره سر په خاورو ړدینه

هسې سوزېږم
پرې نه پوهېږم
په دې نور پوی شه
مرم، نه رغېږم
په لاره ځم ټوله شرنګېږم
ستا د تهمت ځنځیر په غاړه ګرځومه

جګره تو ده شو
ډېره اوږده شوه
زمونږ په کلي
کې هډېره شوه
که د زلمو نه پوره نه شوه
ګرانه وطنه جنګۍ به دې ساتینه

زما ډېر خوښ دی
خو موسم یخ دی
د ښکلو غشی
مې زړه کې ښخ دی
د یار مې چوغې چوغې مخ دی
چې لړه لویه شم غمې به پکې ړدمه



# ما پېژندلی محبوب

هڅاند شخصیت، د ښه استعداد لرونکی او مینه ناک ځوان زه محبوب یادوم.

محبوب صېب له ډېرې مودې پېژنم؛ خو د ستاینې په هکله یې له ما سره دومره توري نشته، چې زه هغه پرې وستایم،کېدای شي دا زما تنبلي وي، خو دومره وایم، چې محبوب صېب زموږ په ملګرو کې تر ټولو نازولی دی، ښایي دا د محبوب صېب نازولتوب وي، ځکه زه وایم داسې نه چې د ده په اړه رانه کوم کمی وشي،مخکې له دې نه یې هم څو کتابونه چاپ شوي چې زه یې لاندې یادونه کوم.

چې داژاړي زه ژاړم (لنډو کیسو ټولګه)

وینځلې رڼا (د لنډو کیسو ټولګه)

د ښکلا پر لور (د شعرونو غورچاڼ)

ګورګوري (همدا اثر) (ټکوریزې)

سربېره پر دې محبوب صېب څو نور کتابونه د لاس لاندې لري چې هغه به هم په دې لنډو ورځو کې د ستاسې تر لاسونو دورسېږي.

د درد تصویر (لنډې کیسې)

لاهم خیرې ګرېوان ګرځم (شعري ټولګه)

نیمګړې مازیګر (ناول)

**صداقت غورځنګ**

**انعکاس راډیو**


چاپ چارې:



مومند خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه _جلال آباد

۰۷۷۷۶۲۶۱۶۱/۰۷۰۰۶۲۶۱۶۱

momand.books@gmial.com


ګورګوري

ټکوریزې

محبوب شاه محبوب

Designed By: Rahmanullah Baheer

